# یادگیرنہ

انور حُسین زرینؔ

# ياد گيرنه

Dedicated to the people of Twin Cities
Minneapolis-Saint Paul, Minnesota, USA
for their
Love and understanding

انور حسين زرين
(پلئي، ملاکنډ)
۲۱.٤.۹۸

| | |
|---|---|
| شاعر | انور حسین زرین |
| د کتاب نوم | یادگیرنه |
| سمون او دون | محمد جمال خان ختک |
| لیک دود | فرمان علي او<br>راحیله بیگم |
| لیک | محمد سعید |
| شمیره | ۵۰۰ |
| د چاپ ځائي | تاپ پرنترز ، پیښور |
| د چاپ کال | مئ ۱۹۹۸ |

# یاد گیرنه

په دې مجموعه کښې شاملې غزلې او نظمونه ما زیات تر د خپل سفر دوران(1988-1996) امریکه کښې لیکلي د هر نظم او غزل سره م د لیک تاریخ، ځائې او کال ورکړې دې دا هر څه ما څه د خپل یاداشت د پاره او څه د هغې اشنا د زره د پاره کړی د چا ذکر چه ما په خپل اولنې کتاب "نمر پرست" کښې کړې

د کتاب نوم ډاکټر محمد جمال خان ختک ایښې. سمون اودون ئې هم هغه کړې ولې چه د چا خبره ما لا خبره نه وی کړې چه هغه په پوهه شي ما وې راشه دا کار هم دهٔ ته پریږدم. داسې ښکاری جمال خان کتاب په درې برخو کښې تقسیم کړی یعنی زما خبرې. اشنا ته خبرې او دنیا ته خبرې.

په دې هر څه کښې ډیرو ملګرو او دوستانو ځما حوصله افزائ کړې ده او زه ئې ډیر مشکور یم ـ دلته زه د هغو ټولو نومونه خو نه شم اخستې خو یو نوم به ضرور اخلم او هغه دې سلمه شاهین. د شاعرۍ په مد کښې هغه ځما استاذه ده ځما د اولنی کتاب نمر پرست اصلاح ئې د سره تر اخر پورې کړې وه خو هغه وخت ئې ما شکریه نه وه ادا کړې که هغې ځما حوصله افزائ نه وې کړې نو نه به دا کتاب وو او نه نمر پرست.

د کتابت کار محمد سعید ډیر په اخلاص او مینه کړې زه د هغه د دې هر څه د زره د اخلاصه شکریه ادا کوم

انور حسین زرین

پلئې، ملاکنډ

# سریزه

ډاکټر فرمان علی[1]

ډاکټر انور حسین زرین ځما یو ډیر پخوانی دوست دی او ځمونږ د دې دوستانې ډیر وخت یو ځائې په یوه اداره کښې تیر شوی دی هم له دې کبله مو یو بل سره دومره نزدیکت دی چه بې خبرو هم د یو بل په احساساتو پوهیږو ولې اته کاله پکښې دا سې هم تیر شوی دی چه زرین امریکې ته تلې وو او په دغه دوران کښې ځمونږ ډیره کمه رابطه وه دا زیر نظر کتاب "یادګیرنه" د دغه وخت پیداوار دی د دې کتاب د لوستو سره ماته دا سې محسوسیږی لکه چه دا کتاب نه بلکه زرین په خپله وی ولې چه د زرین په عملی ژوند او د دې کتاب په وینا کښې هیڅ فرق ( بیلګلوټ) نشته خو د دې روښ حقیقت باوجود ځما کوشش به دا وی چه زه خپل دوست شاته کړم او صرف د هغه د دې کتاب په حواله سره بحث اوکړم.

د دې کتاب د کتو سره چه ځما ذهن کښې کومې خبرې را ځی نو هغه دا دی چه د دې کتاب موضوع څه ده؟ د دغه موضوع بیانولو د پاره هغه کومه طریقه اختیار کړې ده؟ او زرین په کومه کومه حواله سره د نورو شاعرانو نه بیل تلې دی؟

د موضوع په باره کښې خو به د اوایم چه اګرچه د کتاب نوم "یادګیرنه" ده د کتاب موضوع روایتی مینه نه بلکه

---

1 Research Specialist, IDS Agricultural University, Peshawar

انساني معاشره ده. انساني معاشره د مختلفو تضاداتو مجموعه ده. خان او غریب، ملا او دم، عاشق او معشوقه، غم او خوشحالی، مصیبت او راحت د دې تضاداتو یو څو ښکاره مثالونه دی زرین د بعضې تضاداتو هدو قائل نه دې لکه خان او غریب یا ملا او دم هغه ته دا بالکل د رسمونو رواجونو او غلطو عقیدو په نوم جوړې شوې کندې کپرې ښکاری چه ساتل ئې بې ځایه او ختمول ئې ضروری دی په دا سې حالاتو کښې هغه په انسانی معاشره کښې د برابری قایمولو درس ورکوی په دې لر کښې وئیلی شوی ډیر نظمونه د زرین د ژورې مشاهدې عکاسی کوی او دا مشاهده یو وختیزه نه بلکه روانه سلسله ده چه په هر وخت او ځائې کښې شروع وی او پکښې د خپل چا پیرچل هر وګړې شامل وی تر دې چه خپل ځان هم د تنقید نه اوچت نه ګنړی او کله چه مناسب اوګنړی نو ډیر بې کرکې بحث پرې کوی چه تنقیدی هم وی او تعمیری هم.

بعضې تضادات لکه غم او ښادی مصیبت او راحت او یا د عشق دواړه اړخونه یعنی عاشق او معشوقه زرین د انسانی معاشرې یو دا سې حقیقت منی چه د انسانی ارتقا د پاره ضروری دی په دې حواله سره هم د هغه ګنر شمیره نظمونه په دې ګواه دی چه زرین غیر موافق حالاتو سره په ډیر همت او مرانه خپل ځان او چاپیرچل سمول غواری د حالاتو تیرې چه څومره هم زیاتیزی د امیدونو رنړا ګانې هغه ته ښکاری د دغه امیدونو په اسره او د همت او مرانې په وسیله زرین د معاشرې هر وګړی مخ په وړاندې د ارتقاء په لور روان لیدل غواری.



د یو حساس انسان په توګه زرین د ډیرو پاکو جذبو مالک دې د حسن او رنګونو ستائنه او د ظلم او ډیاتی غندنه خو هر چا کړې ده ولې په هجر کښې د صبر او شکر او په مصیبت کښې دَ همت او استقلال مظاهره ډیرو کمو خلقو کړې ده چه پکښې زرین هم شامل دې په تیارو کښې رنړا لټول په ژړا کښې خندا کول ژوند خپل استاذ ګرځول او د دغې استاذ نه د ژوند رازونه زده کول د ده خاصه ده.

د ژوند د رازونو ښودلو د پاره زرین د شاعرې لار اختیار کړې ده ولې د ده شاعری محض د الفاظو ترون نه دې بلکه د جذباتو او احساساتو ترجمانی ده چه د زړه د بیخه راپورته شوې ده او دغه وجه ده چه دې کتاب کښې نظمونه ډیر او غزلې کمې ښکاری ولې چه غزل د پښتو شاعرې ځیله برخه نه ده د غزل په مقابله کښې د نظم بحرونه د پښتون د تیز او ساده مزاج تر ډیره حد ترجمانی کولې شی د ده هر نظم د یو خاص واقعې ذکر دې چه د جدا جدا سرخط لاندې وئیلې شوې دې .

د زرین په نظم او غزل دواړو کښې چه ځما په خیال کوم ښکلې والې دې نو هغه دا دې چه دهٔ بالکل کلی واله او سوچه پښتو وئیلې ده او بل دا چه زیات زور ئې د مطلب په بیانولو دې نه چه د الفاظو په یو خاص بحر او وزن کښې ترون او کله چه د دواړو مقابله راغلې ده نو ډیر په ښکلی انداز ئې د بحر او وزن قربانی ورکړې ده ولې د خپلو جذباتو او احساساتو سودا ئې هیڅ کله نه ده کړې او ځما په خیال دا د هغه په پښتو ادب یو لوی احسان دې.

# د زرین شاعري

سلیم ګل[2]

زرین یو باشعوره او اعلی تعلیم یافته انسان دې ورسره ورسره ډیر شریف النفس مهذب بنده دې او د یو عاشق په حیث هم د زرین پهٔ کردار او ګفتار کښې دغه خصوصیات ډیر په جوت حیثیت کښې ښکاره دي.

خلق وائي چې څه یې پهٔ زړهٔ وي هغه یې په خوله وي د زرین د شاعری د مطالعې دوران کښې ماته د تولونه زیات خوازهٔ پهٔ دې کښې را ښکاره شو چې څهٔ د زرین په زړهٔ دي هم هغه یې پهٔ خوله وې او دا د یو رښتنی او صادق انسان د معصومتیا انتها وي ددهٔ د خیالاتو او جذباتو د اظهار د تولونه ښکلې رنګ ددهٔ معصومانه انداز دې. دې شعرونو کښې ددهٔ دا معصومانه اسلوب او سادګې څومره خوند کوي.

اوس مې هاغه یوه اسره هم پاتې نهٔ شوه
نوې کور دِ مبارک شه ډیره ښهٔ شوه
تا خو وې چې بې له تابه د بل نهٔ شم
هاغه مینه لیونې دِ لاره څهٔ شوه
ما وې ګورته به یې ځان سره زهٔ اُرومه
آ د راز خبره نن رانه ښکاره شوه

2 Store Officer, Agricultural University Peshawar, NWFP, Pakistan



لکه څنګه چې ما مخکښې وئیلی دي چې زرین اشنا یو شریف النفس او مهذب انسان دې او دغه رنګ ئې په شاعرۍ کښې‌هم شته نو د هغې په ثبوت کښې دا یو څو شعرونه وړاندې کوم.

څوک د بل په سپکه ولونهٔ درنیږي
دا لعئ چې ځان له زړهٔ خوشحالوي دې
څهٔ حاجت د پښي شا سپکو لوتو ته
دومره ښکته د معیاره ولې ځي دې
دا چې سپکه وائې د بل درنه د ځان
پهٔ نظر کښې ځان د ښوو غورزوي دې

خو د مینې او محبت دا ساده چې کله د حیات او کائنات په کارزار نظر اچوي نو د زمانې هوښیارانو ته بیا د اسې سبق ښائي.

ژوند لکه ساز د څهٔ اصولو تابع
ته که ژوند نغمه کوې اصول منې به
چه په یو تن ئې رسولې نښې سر ته
زمانه چې څهٔ کوي هغه کوې به
راز د عشق زړهٔ کښې ساته خو کله کله
تهٔ دِ یار د بنرو لاندې پوهوې به
درد د عشق خو عاشق له مشغولا وي
تهٔ کهٔ خوند دمینې اخلې درد زغمې به

د زرین د شاعری مرکزي رنګ د مینې د یوې حادثې باقیات ژرل دي دا باقیات چې اصطلاحاً ورته هجران وائي زرین په ډیر ښکلي شاعرانه انداز کښې وراندې کړي دي:

مینې ناکام عشق لیونې کړمه زهٔ
دا چې د غم سوې مصرعې کړمه زهٔ
اوس ئې چې غم د هجر زیات شي پهٔ ما
شمعې کرم مرې تورې تیرې کړمه زهٔ

او یا دا چه وائي:

څهٔ مې آرزو د ګل راوړې وو ژوند
ایله ئې پانړو کښې راغلې وو ژوند
یوه خاکه وه خاکه پاتې شوله
ما چې ئې ارمان د تکمیل کړې وو ژوند

دا حقیقت دې چې عشق او فن د انسانیت تکمیل کوي خو زرین دَ عشق او فن نه مایوسه دې او په خپل تیر وخت د نادانې یو الزام لګوي لکه چه وائي:

دا چې د هر چا روستو پاتې شومه
ما د ورو لوبه ګنړلې وو ژوند
اوس مِ دَ تن په غوښو نه ده هغه
چا له چه ما تحفه ساتلې وو ژوند



دغه رنګ دا چه:

په دې دشت د انتظار کښې
څوک زما په انتظار دې
نهٔ د چا په انتظار زهٔ
نهٔ مې څوک په انتظار دې

په انسانیت یقین د هر شاعر او فنکار د خیالاتو یوه لازمي حصه ده زرین هم په خپل دې کتاب کښې په انسانیت د خپلو خیالاتو اظهار کړې دې:

زما ورور دې هغه یهود دې کهٔ کافر دې
تل په غم ئې زهٔ شریک زما ځیګر دې
چې پیدا د یو آدمه شو بیا څنګه؟
خان کاکا په څهٔ اوچت د کسب ګر دې
هیڅ څوک نهٔ غواري چې پریوزي د سترګو
هغه ته ئې او کهٔ زید بکر عمر دې
زه زرین ئې دَ زړه وائیم که ئې اورې
نه خبرې چه غرې هغه شاعر دې

په مجموعي حیثیت سره د زرین شاعري د اخلاص معصومانه خیالاتو او جذباتو یوه خوږه او پسته نغمه ده چې چرته لرې د روح په جزیرو کښې راوچتیږي الفاظ ئې روان پاستهٔ او مترنم دي معنې او مطالب ئې عام فهمه او زور فهمه دي.

# داکټر صیب او د پښتو نظم

حکیم الله جان[3]

داکټر صیب د فکر د شعر رباب ته د زړهٔ په مضراب تنګ ورکړي دي او د زړهٔ د تودو جذبو ارتعاش د هغهٔ د شعوری احساس پرهر ختنولي دي. داکټر صیب په نظمونو کښې ښائسته ښائسته خیالونه چیرلی دی په نظم " ناز او پښتو" کښې مره ورې مینې ته ناز وائ او په خپله ورسره په پښتو کولو پشیمانی راوری. وائ

د ناز ولې ناز م نهٔ ورو مره وره شوله
نو خلقه ولې م په عشق کښې پښتو کوله

او چه کله خپل ژوبل ژوبل احساس ورله رندئ ته مخه ورکړي ده نو جارئې کوکه وهلې ده

را ساقی منم زهٔ خبر نهٔ وومه
راکه اوس قربان چه د جامونو شوې
څنګه څه حاصل دِ د ژوند شته که نه
اې د مینې اوره د کلونو شوې

داکټر صیب هم لکه د نورو ترقی پسندو د خپله ژبې ژوند

3 Lecturer, Pashto Department , University of Peshawar.



او مینې پرمخ تګ غواری. د "نمر سترګه" نظم کښې دا سې په رمز کښې وائ.

رابه شی سحر د خوشحالو ونیم
لرې د نمر سترګه په ختو وینم
بیا م نن مالیار مسکې لیدو په خوب
باغ د ګلو بیا په غوریدو وینم

داکټر صیب یو حساس غرې دې او شاعر وی هم حساس د خپل چاپیر چل نه ښهٔ اګاه دې "سلیم شاه ته خط" کښې دا ښرګندونه داسې کوی.

ته لوپته یادوې دلته کښې خو
ښځې بربنډې په کوڅو کښې ګرځی
دلته د دې خبرې باک نشته دې
کهٔ څوک لغر څوک په جامو کښې ګرځی

او یا بیا دا چه:

ځوانی به تیره وی خو جوش م شته لا
زور به یم زه لا ولوله خو نه ده
راته بیا تیر یادونه مه یادوی
ژوند خو احساس څه افسانه خو نه ده

داکټر صیب شعری آمد او آورد ته میلمانهٔ وائ ځکه چه دا

یو قدرتي مَلَکه ده هم په نظم "میلمانهٔ" کښې داسې اشاره کوی

پټ په زړهٔ کښې خوشحالیزمه هر بیت ته
میلمانهٔ لکه د لرې وی راغلی
ورکوی چه درد د مینې په جواب کښې
ما لیدلی بې مروته بلا ښکلی

د "خاورو ښلې" نظم کښې د انسانی تخلیق د اضدادو ذکر داسې کوی

ما بس د اضدادو مجموعه ګنړئ
دومره په خپل ځان زهٔ پوهیدلې یم
زه لکه د وخت نه یم چه یو ځلې
څومره فنا همره پائیدلې یم

"عنایت الله ضیاء ته خط" نظم کښې چه د وطن یاد ئې په زړهٔ راوریدلې دې وائ.

چه په یاد سره یئ زما د پاره ښکل کړې
د متئ آخرې خاورې مې یادیزی
دلته حسن و ښکلا شته خو ځان ځانی ده
ځکه سترګې م په هیچا نه خوزیزی

په "موجودیت" نظم کښې انسان ته په خپله د خپلې لار



اوښکلو، دْ تګ و دو، په خپل اعتماد او محنت د منزل حاصلولو سبق ورکوی .

خوند د ژوند ئې درنه واغست څه وهمونه دا سودا دِ
واک د ژوند دِ خپله واخله لار د مهٔ پریزده رندو ته
تهٔ پخپله یو جهان ئې، معورئ د زمکې آسمان
وار خطا نشې د وخت، ازمیښتونو کشالو ته

په یو ځائې کښې د خپل اشنا سره دا سې مخاطب دې

زما او ستا تر منیځ لوظونه چه وعدې وې
څهٔ عنوان م د غزل څه ئې مصرعه شوه
ما وې ګورته به ئې ځان سره زه وروړمه
آ د راز خبره نن رانه ښکاره شوه

په نظم "په انسانیت" کښې د ذات پات او مذهب په بنیاد د فرق غندنه په ډیر ښکلی طریقه کوي.

زما ورور دې کهٔ یهود دې کهٔ کافر دې
تل په غم ئې زهٔ شریک زما ځیګر دې
تهٔ ئې څهٔ ګورې او په کښې
انسان څهٔ خو بس یو قسمه ځناور دې

د ذات پات او مذهب رسم ورواج د سرخط لاندې د فرسوده نظام په بدلولو زور ورکوی. او وائ

اوه‌رولی ما او تا ځمونږ نیکنو
پیدا ګیر دغه د وخت د ازمیښتونو
اوس بیرئ راته په ښو کښې د ازل
مونږ قیدیان د خپل تاریخ روایتونو

نظم "خاکه" کښې وائ.

دا چه د هر چا روستو پاتې شومه
ما د ورو لوبه ګنړلې وو ژوند
اوس م د تن په غوښو نه ده هغه
چا له چه ما تحفه ساتلې وو ژوند

احساسات او جذبات د وخت سره بدلیږی څومره چه د انسان عمر زیاتیږی دغم دوران په غم جانان حاوی کیږی دغه کیفیت په "نظم" کښې په مختصر خو په ښکلی انداز بیان شوې دې

چه به د ښکلو په یو
نظر اوبهٔ شومه زهٔ
چه به ئې غلام د مدام
په تش کاتهٔ شومه زهٔ
هغه لشې د سرور
وخت سوزولی زما
لکه ځما چه نه وی
لرې اوس تلی له ما



یا بیا دا چه:

د دنیا غمونو راوستم په هوش کښې
پیدا شوې د ادې ګنې خود سر ووم
الوتمه د مستئ په هوا پورته
د ازغو په زمکه لاندې نا خبر ووم

د نصیحت او لوئ بنده د سرخطونو لاندې د یو مبلغ په شکل کښې راځی

لز د درد سره عادت شه
بس دا ویر انګولا پریږده
ژوند په ویر اوسلګو نهٔ شی
قدم واخله امسا پریږده

کهٔ زهٔ د داکټر صیب د بیلو بیلو نظمونو او د هغی د مضامینو ذکر راواخلم نو خبره به ډیره اوږده شی. ولې په مجموعی ډول چه ما کوم تاثر د هغهٔ د شاعرئ نه اخستې دې نو زما په خیال داکټرصیب د جدید نظم یو دا سې شاعر دې چه د خپل داخلی احساس په څرګندولو ښهٔ قدرت لری په کومو موضوعاتو چه هغه نظمونه لیکی او په کوم اندازئې لیکی په عام ژوند کښې دا سې احساس ښکاره کولو د پاره د قدم ایښودو هیڅ لاره نشته.

# ياد ګيرنه

راشي چه په قبر م نو ياد لره

ماته ژړا اونه کړې
ماته دعا اونه کړې

ما لکه چيتر کښې د باران يوه شيبه ګنړه
ما نمر د غرمې د نيمې شپې توره تياره ګنړه
زه د نورو مرو غونډې هډوکي خاورې نه يمه
سيل کښې د مرغو ما د مستئ مست په غوته ګنړه

زه په نيمه شپه لرې آواز خوږ د شپيلئ يمه
زه د اور لوګې د غره په سر کښې د مانړئ يمه
ما په بنر کښې زوږ ته د ځرخکو مابنامو ګنړه
زه په ننداره دِ ناست هميش ستا په بليئ يمه

ما په نرى باد د خزان پانړه په لويدو ګنړه
ما د اوبو شور د غرونو تل کښې د لختو ګنړه
تاو د بربوکئ زه پټ آواز د خاموشئ يمه
ما ځان ته نژدې د خپل زرګى د درزيدو ګنړه



زه په انګوستا دِ يخ سورې د بنرو يمه
زره کښې دِ مستى مسته خندا په شونډو سرو يمه
ما په مرو مه شماره زه مر نه يم
ستا د وجود ساه زه دِ خوله د انګو يمه

ما روح د ژوندون د صباون يوه نغمه ګنړه
ما د هر ارمان دِ د زرګى يوه اسره ګنړه
زه د قدم چاپ ستا د سفر هرې ګرهئ يمه
ما د خپلو سترګو د نظر يو اشاره ګنړه

Uptown, Minneapolis, MN
USA
January 4, 1993

# یاد گیرنه

کومې کومې زما نخښې ورانوې به
ما که نه زما غزلې یادوې به

ژوند لکه ساز د څه اصولو تابع
ته که ژوند نغمه کوې اصول منې به
چه په یو تن یئ رسولې نښې سر ته
زمانه چه څه کوی هغه کوې به
دا عمل سزا جزا سره پیوند دی
ته که ښه څه بد کوې جواب مومې به
راز د عشق زره کښې ساته خو کله کله
ته د یار د بنړو لاندې پوهوې به

درد دَ عشق خو عاشق له مشغولا وی
ته کهٔ خوند د مینې اخلې درد زغمې به

Comstock Hall, University of Minnesota, MN
USA
July 7, 1992



# یاد گیرنه

فام د سترگو د مردانو مه غورزیزه
نر افغان شه وینه ورکره مه تی تیزه

چه د کاغو سره ځې مرداري خورې به
ځه په سیل کښې د باتورو الوزیزه
لکه باز هسې تکره شه ایلئ راؤره
د کاکا په اوزه ښاخ ته مه چوه تیزه
دغه وار دِ دې چه تیر به شي ترتله
لکه بُد د بل جنم مه اسره کیزه
ته چه وینه ورکوې نو غم د څه بیا
ځه په خله کښې د مرگی ورځه اوسیزه
هر چه غاره ورکوی هغه یار نه وی
تش د مینې په لوظونو مه غولیزه
چه ظاهر یئ په خله یوه باطن بله
د نستونری د مارانو نه یریزه

چه دِ پتې سترگې لاس ورکوو په لاس کښې
ځه زرینه د خپل لاسه ځه شرمیزه

Saint Pual, MN
USA
October 23, 1992

# یادگیرنه

چه په مه که د ناصح، نه په زور د نیکهٔ پلار
اوس د زوره ئې خبر شوم خودسرئ چه ماکوله

یا د قامه سره تلم به یا به خوښه د دې زړهٔ م
اوس بې یاره مددگار، دلبری چه ما کوله
تل د زړهٔ د لاسه خوار، کاش عبرت چرې راتلې هم
چه م خرې اوبهٔ یوسی ناپوهی چه ما کوله
زهٔ ښکاری ځانته ګاوره، لارم ښکار شومه د خرارو
نامراده در په در تورزنی چه ما کوله
زهٔ مرید د اصلیت، منحرف ددې پیرانو
ماته کار د عبادت وو ګستاخی چه ما کوله
زهٔ خو ورک په محبت، تل اشنا د اشنایانو
دا به لیک وه په تقدیر م، دشمنی چه ما کوله

ما وئیل دا شوه یادګیرنه د زرین غوندې خودسرله
دا د غم په تورو شپو کښې شاعری چه ما کوله

136 COB, University of Minnesota, MN,
USA
February 16, 1992



# غزل

ژوند د مینې ته زندان وئیلې نه شم
تاؤ د مینې ته نیران وئیلې نه شم

چه په حال د زړه م پوهه نه شو د سترګو
دې جانان ته زه جانان وئیلې نه شم
چه په شپه د هجر راغې داسې تیر شو
دې طوفان ته زهٔ طوفان وئیلې نه شم
چه لمبه نه شو ګوګل کښې م تر اوسه
دې ارمان ته زه ارمان وئیلې نه شم

چه په غاره م ریښې لا د ګریوان دی
دې رومان ته زه رومان وئیلې نه شم

Seatle, Washington
USA
December 25, 1989

# نوي تصور

خیال ته م نوې تصور راځي چه
پس د مودو لکه دلبر راځي چه

زره م هوا اوخوری خندا خوروی
دا دَ گوگل وائيم بهر راځي چه
خیال د اشنا رانه غم یوسی د ژوند
د مینې خوب تیر ماځیگر راځي چه
زه یئ په خوند نشه نشه یم همیش
درد د بیلتون دا د ځیگر راځي چه
د چا خندا د چا شرنگار د بنگرو
ښکلې اشنا پټ په هنر راځي چه

دا په خوازهٔ خوب دا چغار د لرې
دا د مارغانو د سحر راځي چه

2101 Knapp, Saint Paul, MN
USA
August 3, 1992



# لوظونه

اوس م هاغه یوه اسره هم پاتې نهٔ شوه
نوې کور دِ مبارک شه دیره ښه شوه

تا خو وې چه بې له تا به د بل نشم
هاغه مینه لیونیئ دِ لاره ځه شوه
ما وې گورته به ئې ځان سره زهٔ اورمه
آ دَ راز خبره نن رانه ښکاره شوه
چه په سُر سالو کښې یار ته بهر راغلې
د حسرت په اور ستی ستی م خله شوه
زما او ستا تر مینځ لوظونه چه وعدې وې
څهٔ عنوان م د غزل څهٔ ئې مصرعه شوه

چه دِ ذکر نن په دک محفل کښې راغې
تاؤ د مینې په گوگل کښې م لمبه شوه

Chowk Yadgar, Peshawar
PAKISTAN
November 4, 1988

# غزل

دا چه دَ لوری ئې پرسان راشی
دا سې په زره کښې م طوفان راشی

ما چه ئې کله تصور کړې دې
راله سلام ئې هغه آن راشی
اوس ئې نامه هم اخستلې نهٔ شم
ملګرو ترس م په ځان راشی

چرته چه حسن او ښکلا اووینم
په خپل اشنا پسې ارمان راشی
چه دَ وصال شپې ئې رايادې کړمه
په تصور کښې م خندان راشی



دَ دغې خوب نو تعبیر څهٔ دې زما
لاس کښې توکرې م د ګریوان راشی
تهٔ دِ دَ چم ملګری پوهه کړه اشنا
قاصد م راشی خو پریشان راشی

چه زهٔ تابیا د ګل غوټو اوکمه
نصیب ته ګوره چه خزان راشی
وې ئې زرینه زهٔ بې پته نهٔ یم
دا دِ دَ چا په ما ګمان راشی

Agricultural University, Peshawar
PAKISTAN
August 1, 1988

# خاکه

څه م آرزو د ګل راوړي وو ژوند
ایله ئي پانړو کښې راغلي وو ژوند

یوه خاکه وه خاکه پاتې شوله
ما چه ئي ارمان د تکمیل کړې وو ژوند
دا چه د هر چا روستو پاتې شومه
ما د ورو لوبه ګڼرلي وو ژوند
اوس م د تن په غوبنو نهٔ ده هغه
چاله چه ما تحفه ساتلي وو ژوند
په خپلو کړو ئي زهٔ پښیمانه کرمه
ما چا بې پتو ته سپارلي وو ژوند
اوس ئي تابیا د نسخوګی کومه
درد م د عشق په زړهٔ خوړلي وو ژوند

څهٔ زهٔ غمخور څهٔ د ازل حادثه
دک ئي د درد زما لیکلي وو ژوند

Comstock Hall, Univ: of Minnesota, MN
USA
June 22, 1992



# ضیاء ته خط

هیڅ په بند ئي نهٔ پوهیږم
دا راپیښه څهٔ قصه شوه
د بارانه پتید مه
د ناوې لاندې م شپه شوه

ما وې دا لکه جنت به
خبرنهٔ وومه چه دلته
را شیئ اوګورئي ملګرو
تکه زیره م ګونه شوه

اوس په کړو خپلو پښیمانه
بس پښتو یم رانیولي
نور عیشونو ته سلام م
د هر څهٔ نه م توبه شوه

سمه لارشوه راته شاره
بې رهبره در په در شوم
رنړا ورغ لکه د روند
راته تکه توره شپه شوه

Saint Paul MN
USA
January 20, 1989

# عنایت الله ضیاء ته خط

زره م نه دي زما لا گوره ځوانیږی
چر ته حسن چه وی ځی هلته اوسیږی

دلته حسن و ښکلا شته خو ځان ځانی ده
ځکه سترگې م په هیچا نه خوږیږی
چه په یاد سره یې زما د پاره ښکل کړي
د متې آ خرې خاورې م یادیږی
هغه ناسته په کشتی کښې د سیند غاره
محفلونه م آغه سترگو کښې غریږی

دې زما د قام ځلمیو ته نعرې کره
چه د وخت دِ ورستو نور نه پاتې کیږی

Bailey Hall, University of Minnesota, MN
USA
February 20, 1989



# غزل

میني ناکام عشق لیونې کرمه زه
دا چه د غم سوې مصرعې کرمه زه

اوس یې چه غم د هجر زیات شی په ما
شمې کرم مرې تورې تیرې کرمه زه
د اندیښنو دِ سیوا څه راوری
وخته ظلمونو دِ ذرې کرمه زه
په لا شعور کښې م صدمه د ازل
د لیونو چغې سورې کرمه زه

عِشَق یې سوچ فکر تاله کرو زما
چه د ماشوم هسې گیلې کرمه زه

2101 Knapp, Saint Paul, MN
USA
April 1, 1993

# غزل

لکه زرک به په چرچقو په سحر ووم
بې پروا د ژوند د سختو او خطر ووم

الوتمه د مستۍ په هوا پورته
د ازغو په زمکه لاندې ناخبر ووم
د دنیا غمونو راوستم په هوش کښې
پیدا شوې د ادې گنۍ خود سر ووم
ارمانونه م تول لوټ شو په یو وارې
چه ملگرې د غلچکو د سفر ووم
لکه خس د لویۍ لارې هسې سپک شوم
چرته زه هم د چا گران د چا نظر ووم

حال د زره م برسیر نه شولو د اوښکو
زه زرین ځکه په چغو لاس په سر ووم

Green Hall, University of Minnesota, MN
USA
October 26, 1994



# ایرې

زه د سیله پاتې آ مارغهٔ یمه
مات چه یۍ وزر یۍ غوږ په زره یمه

نهٔ راځی لمحه یوه د وصل م
زهٔ عمری قیدی د بیلتانهٔ یمه
زهٔ شوگیر د هجر چه بې کوره کرم
ویخ اوس نیم اودهٔ په نمر خاتهٔ یمه
دې کښې گناه نشته هیڅ هیچا وته
دا د ځان عذاب په خپله زهٔ یمه

عِشَق م کوته سِکه د عمر کره
زهٔ زرین ایرې د چا د ځهٔ یمه

Saint Paul, MN
USA
April 24, 1993

# غزل

وارہ خوبونه مِ رښتیا اوختو
ستوری د بخت مِ په ځلا اوختو

څو که د عقل نه بهر وو زما
د نجومی وئیل رښتیا اوختو
گوره قسمت ته چه په برخه زما
جوره لاسونه گلې ستا اوختو
ما خوشحالی چرته لیدلې نه وه
ځکه وخکی م په خندا اوختو
دا لاروی زما د لار ملگری
خاص د کوڅې م د اشنا اوختو
ما په ژوندون د غم گمان کولو
خونه شکونه م خطا اوختو
نن چه زاهد ته م په خله راغللو
واره خیالونه م گناه اوختو

دا چه په ناز دِ راکتلی وو گلې
لارو دردونه مِ د ملا اوختو

Excelsior Hotel, London
UK
December 27, 1988



# ناز او پښتو

د نازولې ناز م نۀ اُورو مروره شوله
نو خلقه ولې م په عشق کښې پښتو کوله

وې ئې مدام زۀ ژړیدلې نۀ شم
تا سره نوره اوسیدلې نۀ شم
تۀ د دنیا نه دیر بدل ئې
دغه خطره نوره زغملې نۀ شم
د غر یو ژړا ئې په سرو سترگو خمارو کوله
نو خلقه ولې م په عشق کښې پښتو کوله

چا کره ځم چه سره لمبه ئې راته
ته چه نیم وریت او نیم کچه ئې راته
دغه ژوندون م پکار نۀ دې
چا سره ښۀ څۀ بد کولې نۀ شم
بده وینا ئې د غصې نه په نعرو کوله
نو خلقه ولې م په عشق کښې پښتو کوله

وې ئې په غم کښې را سره نۀ شوې تۀ
چرته په ښو زما دَاده نۀ شوې تۀ
دا سې د شین کانړی دِ زره دې
تا سره ځان نور خوارولې نۀ شم
په خپلو کړوئې پیښمانی د تیرو شپو کوله
نو خلقه ولې م په عشق کښې پښتو کوله

تا نه چه ځان له شم خوشحاله به شم
ایله د سیالو سره سیاله به شم
دغه ژوند بیرته نهٔ راځی بیا
دا سې ئې په سیند لاهو کولې نهٔ شم
چه ئې تا بیا د نوی ژوند د خوشحالو کوله
نو خلقه ولې م په عشق کښې پښتو کوله

ما وې د درد دِ اموخته کرمه زهٔ
غوخ دِ په زرهٔ اره اره کرمه زهٔ
ښهٔ ده چه خلاص شمه له تانه
نورې چرې په زرهٔ خورلې نهٔ شم
وومه ساده چه م له تا طمعه د ښو کوله
نو خلقه ځکه م په عشق کښې پښتو کوله

ما ته یوه خلقوته بله کوې
دکې خبرې د چل وله کوې
نهٔ دِ په دین نهٔ په ایمان رسم
تا سره ئې سرته رسولې نهٔ شم
ستا نه زرین خو توقع د پښتنو کوله
نو خلقه ځکه م په عشق کښې پښتو کوله

Saint Paul, MN
USA
March 22, 1993



# سزا

چه په طمه د راتلو به ئې، زما وینه دنګیدله
چه سحر به نهٔ راتللو، چه به شپه نه تیریدله
چه په تکه سره غرمه به، تصور ته م راتلله
دا به مانه مروره، دا به مانه تولیدله

اوس خندا ئې راته فریب، فریادونه ئې مکر شوی
سوګندونه ئې راته جال یو، تول یادونه ئې زهر شوی
چه به تل وته ځلور وې، ترې م سترګې صبر شوی
آ خوږې سریکې د هجر، م چرې د ځیګر شوی

ده م مرګ وته لیواله، دا چه زهر راکوی لا
په زخمونو راته مالګې، درد د زره م زیاتوی لا
دا په خله چه وائي یو ځهٔ، په رښتیا ځهٔ نور ځوی لا
دې چلونو ئې سوې سوې، خلقه نور م سوزوی لا

هیخ په چل ئي نۀ پوهیزم، خپلو وینو کښې تلیزم
چه م نۀ لیدې په عمر، په تش خیال ئي لمبه کیزم
اوس په ښو خپلو پښیمانه، د احساس په اور سوزیزم
راته ښۀ واره خپل بد شو، چا ته ورشم اوژړیزم

هر ساعت م نا قراره، غوږ په زره ویه ځیگریم
اوس ژوندون راته یو بوج، غمزده شام و سحر یم
تول خوبونه م تالا شو، نۀ په غم نۀ په اختر یم
دا سزا د کوم گناه م، زۀ زرین چه در په در یم

Saint Paul, MN
USA
January 31, 1992



# بورا

زۀ د حسن شیدائي یو
یو په مینه پائیدمه
شپه او ورځ د خوشبو یانو
د بورا به تاویدمه

ژوند خندا سپرلې مدام
چه په ځان به نۀ پوهیدمه
غم د درد هجر م نه وو
مست مارغۀ به چغیدمه

تیر ساعت راته یو خوب
د صبا د غم بې غمه
د سرونو سره ساز یو
په خپل نن کښې اوسیدمه

خو اوس ځکم د زرگی وینې
چه لوظونو کښې راتلمه
زۀ د ژونده ناخبره
په رنگونو اوغولیدمه

ښه خبر ووم چه دلدل دي
بيا هم تلمه دوبيدمه
دا د عقله سره زۀ چه
دا په ول کښې گډيدمه

په خپل ځان د ځان دشمن
د کاروان چه بيليدمه
دا د زرۀ په وينو رنگ چه
دا چه جال کښې کيوتمه

1186 Gibbs, Saint Paul, MN,
USA
April 30, 1992



# نظم

هغه خيالونه زما
لرې اوس تلی زما
لکه زما چه نۀ وی
اوس پردی شوی زما

هغه په نه څه هسې
چه به شوگير کرلو ما
چه ماتمونه مدام
ازلی ويرکرلو ما
هغه قصې د ژړا
د زره وتلی زما
لکه زما چه نۀ وی
لرې اوس تلی زما

هغه په نيمه شپه چه
به رابيدار شومه زۀ
لکه بې کوره بلبل
سر په چغار شومه زۀ
هغه تاؤونه د عشق
اوس سارۀ شوی زما
لکه زما چه نۀ وی
اوس پردی شوی زما

چه به د ښکلو په یو
نظر اوبهٔ شومه زهٔ
چه به ئې غلام د مدام
په تش کاتهٔ شومه زهٔ
هغه لشې د سرور
وخت سوزولی زما
لکه زما چه نه وی
لرې اوس تلی زما

Minneapolis, MN
USA
December 23, 1994



# غزل

د دې خپلو خواهشاتو په عذاب یم
چه م خوب و قرار نشی په گرداب یم

ما وې دا به زما عمر ځلنده کړی
غولیدلې د گلونو په کتاب یم
اوس خبر ئې نهٔ راځی او نهٔ په خپله
په ناعلاجه مرض پروت یمه خراب یم
د دنیا غمونه دیر ورته زهٔ یو یم
ولې بیا م قدر نشته که نایاب یم
اوس که اُوری که لا په غاره غورزوی م
زهٔ د زور کله د هسې رنگ سیلاب یم

زهٔ خو ویم ورته خو کله زما اوری
د دې زړهٔ د لاسه وریت په اور کباب یم

International Hall,
University of Peshawar,
PAKISTAN
April 16, 1982

# د خاورو شخلي

چرته چه دنیا زهٔ غورزولې یم
هلته یو په دوه راپورته شوې یم

ما بس د اضدادو مجموعه گنرئي
دومره په خپل ځان زهٔ پوهیدلې یم
زهٔ لکه د وخت نهٔ یم چه یو ځلي
خومره چه فنا هومره پائیدلې یم
ښکلې چه م خون د وفا او نهٔ کرې
زهٔ دِ انتظار وراندې وژلې یم
راشه چه خپل ځان درنه لوگې کرمه
بې له تانه زهٔ د خاورو شخلي یم

زهٔ لکه زرین په ظاهر هسې چه
پټ د زره په سر احساس دا غلي یم

Bailey Hall, University of
Minnesota, MN
USA
February 8, 1990



# غزل

څه به نو منزل ته رسیدمه زهٔ
تلمه چه په شارو گتو تلمه زهٔ

ما په ماشومتیا دا خوب لیدلې وو چه
اُورمه خرو اوبو په مخه اُورمه زهٔ
دا زما د خپلې وزسترگئ قصور
دا د خپلو سترگو چه لویدمه زهٔ
چرې چه په ښه زما رانغله نو
ورکه دغه مینه چه ئې پالمه زهٔ
ولې ئې د سره بیا را یاده کرې
لرې ئې د زرهٔ چه غورزومه زهٔ
اوس ئې په تش خیال لمبه لمبه شمه
آغه چه ئې په مینه نازیدمه زهٔ
ما کهٔ لز عبرت څهٔ اخستې د ژوند
ولې به په کرو م شرمیدمه زهٔ

را دِ شي راځي که نن قضا د ژوند
چا وې چه ئې پروا ذرا کومه زهٔ

Saint Paul, MN
USA
October 20, 1992

# کتبه

زه بې ځاره د رسمونو، رواجونو فرسوده ووم
هر ساعت م ناقراره، هر ګرهئ زۀ غمزده ووم

ګیله مند د خپل تقدیره، مورورپلار او دخپلوانو
خوپه ځنګ کښې د حسینو به خوشحاله ورځ او شپه ووم
کله سوخت د انتظار ئې، کله طمع ئې د دیدار
چه اخر به چرې یو شو، تل ژوندې په دې اسره ووم
بس هم دغه یو ارمان وو چه ئې غلام ووم دعمرونو
د خپل ځان سره په جنګ، د خپل زړۀ په ویر اخته ووم

اوس امید شته نۀ آتنده، انتظارد چا د سترګو
د ا زړۀ په خوب اودۀ اوس، تل په ژوند چه شوګیره ووم

Saint Paul, MN
USA
February 5, 1992



# نظم

په دې دشت د انتظار کښې
څوک زما په انتظار دې
نه د چا په انتظار زۀ
نه م څوک په انتظار دې

دا دلئ دلئ د عشق
چه م غم په زړۀ امبار دې
سوې لوې تود احساس
م ګوګل کښې را ایسار دې

چه په وینو ئې ساتم زۀ
په لیمو ئې ګرځوم زۀ
ما ساتلې په خپل کور کښې
خپل قضا لره خامار دې

نۀ مو یو سره لیدلی
نه وعدې مو اخستلی
څۀ د عشق په حادثو کښې
څومره ښکلې انتظار دې

زۀ چه کله پوهیدلې
ما په زړۀ کښې خپل موندلې
د دې درده به څۀ وایم
دا په ما پسې آزار دې

چه تیریږی نۀ لنډیږی
په لیمو کښې م بلیږی
له دې ژونده نامُراد
تن و ځان م په انګار دې

Saint Paul, MN
USA
March 28, 1990



# ارمان

تصور م د ژوندون چه پې روښان وو
د مودو م په زړګی داسې ارمان وو

نیم پخته څۀ لا کچه څۀ لا سمسور وو
رنګا رنګ زما د ګلو ګلستان وو
څه اشنا څۀ نااشنا څۀ زړۀ راپورې
لکه سورې راسره چه به روان وو
لکه ستورې د سحر دغه رهبر م
د ژوندون په ګماګم کښې چه نشان وو
دا ملګرې د غرمو م ماښامونو سحرونو
دا قرار چه م د زړۀ یَه په هر آن وو
دا اسره م د ژوندون یکی امید م
دا احساس له هره څۀ چه راته ګران وو

بیګاه خوب کښې چا په غاره کښې لاس راکړو
په سحر ئې چه تعبیر څیرې ګریوان وو

Grand Rapids, Michigan
USA
November 11, 1989

# میلمنه

تهٔ میلمنه د ماښام، کورته راغلې زما
گوره خفه چه نهٔ شې، د ښکلو ښکلې زما

تا سره راز د ژوندون، د خوشحالو دې زما
تهٔ مسيحا د مرض، شوگيرو تبې زما
ته د خوبونو تعبير، زما د هاغې سحر
باغ د گلونو سپرلې، د سوې مينې زما
ستا په مسکا کښې رڼرا، ژوند دائمي وينمه
بې له تا تور تمونه، لارې گودرې زما

تا سره ځنگ کښې سرور، احساس د مينې نشه
تا نه قربان فکرونه، دغه سندرې زما

Bailey Hall, University of Minnesota, MN
USA
April 26, 1992



# غزل ـ

بس په درتلو کښې پاتې شوې یمه
د خپلې ژبې گرځیدلې یمه
ستا انتظار رانه اونهٔ شو گلې
د شوگيرې خوبونو اُورې یمه

په ما د وچې پشکال تير شو
لکه دَ لوخې ريژيدلې يمه
دا ستا غمونه د زغملونهٔ وو
د زرهٔ دَ برمه پريوتلې يمه

مهٔ يادوه هغه تراخهٔ وختونه
چه په جرگه درته راغلې يمه
زهٔ بې له تا دا سې نيمگرې يمه
په نوم ژوندې زهٔ د گور مرې يمه

مستې خو لاره چه ځوانى تيره شوه
اوس خو بس زهٔ د خاورو ځلې يمه
هره نغمه م د فرياده ډکه
د مينې تيغ په زرهٔ ځيرلې يمه

ژارمه ډیر ځو اوښکې نۀ راځی م
دا به آزار د چا نیولې یمه
عشق پیشه مینه چه کار لری یو
د آغې پیر په قدم تلې یمه

Agricultural University, Peshawar
PAKISTAN
August 16, 1988



## غزل

ستا په زړه کښې غلا وه ځکه غلې وې
ما درته کاتۀ چه پښه نیولې وې

ته زما دَ زړه په تل کښې اوګوره
چرته دَ نظرونو م ساتلې وې
اوس یئ درته وایمه دا ځکه چه
ته که پوهیدې داسې به ولې وې
ولې دِ له ما لاسونه پورته کړو
چا راته د عمرونو لمسولې وې

څنګ دِ ناغرضه ځان په ویښه کړو
ته لکه دَ مرو چه خوبولې وې

Vancouver, British Columbia
CANADA
December 29, 1989

# زۀ او تۀ

گلې پام کوه را نۀ شي
په دې لاره کښې ازغی دی
اموخته ته د خوندونو
دلته کوُکې اسویلی دی

تۀ لائقه د محل
ستا ښائست لکه سپرلې دې
بې درکه د صحرا زۀ
زما ژوند خاورې‌ایرې دې

نازولې تۀ د مور
خوئیندو رونړو او د پلار
زۀ راورې د اوبو یم
بې درکه بې دِیار

په دې دشت د انتظار کښې
څوک زما په انتظار
نه د چا په انتظار زه
نه م څوک په انتظار



لاغوتئ ته د گلاب
لا شباب وته پهے لار
زه وختونو رنځولې
د ژوندون ځنې ویزار

دا دلئ دلئ غمونه
چه په زرۀ زما امبار
سوی سوی احساسونه
م گوگل کښې را ایسار

2101 Knapp, Saint Paul, MN
USA
January 1, 1993

# غزل

دا دِ څۀ زره درته وئيلی وو نن
را غلې په خير د مودې نۀ راتللې

جور د مودو م را دک شوې وو زړۀ
اوښکې زما به چيې نۀ راتللې
د غرسنو م نيغه اووې ورته
ماله د نورو نخرې نۀ راتللې
دغه م وخت د فيصلې د ژوندون
ولې خوبيه د شپې نۀ را تللې

را باندې خپله حيا گرانه نۀ وې
زما په زړۀ به چپې نۀ راتللې

Duluth, MN
USA
May 6, 1993

# د گيدړ سندره

زۀ بې له تا دلته تيرې وينمه
سترگې م دواره تکې سرې وينمه
يوه لحظه يوازې پرې م نۀ دې
در پسې زړۀ ارې ارې وينمه

وی ورځ او شپه راسره
هره لحظه راسره
دغه د زلفو ولونو خيال دِ
لکه د سوری را پسې وينمه

ښکاری دا غم به وی تل
درد په قسم به وی تل
حوصله خپله پوهوم چرته پښا نه شی
له ژوند اوزدې د هجر شپې وینمه

ژوند به ملال شی زما
حال به څهٔ حال شی زما
حال به زما مرې د گور شی
درد د بیلتون څهٔ خونړې وینمه

Int'l Hall, University of Peshawar,
PAKISTAN
November 21, 1981



# څواب

ستا گیله منم په ځائې ده
ذرم هیرې ستا نیکیئ شوې
هغه طنز دِ نن ربنتیا شو
تورې سترگې مِ سپینکئ شوې

خو ما کهٔ نهٔ منلې بیا هم
د ژوندون څهٔ مجبورئي شوې
څهٔ دردونه د گوگل مِ
څهٔ د اوښکو مِ لړئي شوې

دغه ژوند راته سور اورچه
دواره پښې زما پولئ شوې
څوک د ساوی زما نهٔ وو
ورځې شپې راته زندئي شوې

چه د غر غوند ارادې م
ماتې ماتې شوې سلگئ شوې
ا مید و نه تلو سې م
ما تمو نه تنها ئي شو ې

نو ستا لار ته م کتلی وو
پټ په زړه کښې م ژړلی وو

Bailey Hall, University of
Minnesota, MN
USA
May 27, 1989



# نازولې

سترې د پیرونو ته، گلې غریو نیولې ئې
سترگې دِ گیلې کوی، بیا چا زورولې ئې

زۀ چه درته اوگورم، ته چه دا سې غلې شې
لاس دِ په سینه یوسې، هسې ساه نیولې شې
پوهه شم پتوې له ما، غم دِ غمزولې ئې
سترگې دِ گیلې کوی، بیا چا زورولې ئې

څه چه دِ قرار کرم، دا دک د غمونو زړۀ
ژوند درنه خپل ځارکرم، درکرم د سرونو زړۀ
گرانه د هر چا په ما، گرانې نازولې ئې
سترگې دِ گیلې کوی، بیا چا زورولې ئې

لر کره وسوسې د زړۀ، زړه د ټول عمری درکوم
ستا په خیشت قسم گلې، زیرې د سپرلی درکوم
ته د کوم جهان دلته، غم د ژوند راورې ئې
سترگې دِ گیلې کوی، بیا چا زورولې ئې

زرونه شي پیوند سره، گوره په اتبار د زرۀ
گوره د عشق لار دغه، اوکه نن اقرار د زرۀ
ولې د هر چا دا سې، دا سې زرۀ راکښلې ئې
سترگې دِ گیلې کوی، بیا چا زورولې ئې

Downtown, Minneapolis, MN
USA
January 3, 1994



# غزل

تۀ چه دِ منکره په لوظونو شوې
پورته م لمبې د پرهرونو شوې

څوک دِ را په زرۀ شو چه ناسا په دِ
دا اوښکې لرئ په رخسارونو شوې
گوره محبت ته م چه ځوان شولو
سترگې دِ اشنا په قدمونو شوې

دا دِ لیونتوب کۀ د ځوانئ نخښې
لارې چه په شا بیا په نوکونوشوې
را ساقی منم زۀ خبر نۀ ومه
راکه اوس قربان چه دَ جامونو شوې

أُووايه ژوند ښۀ دَ انتظار کۀ نه
دا چه ئې په ښنګ مرِ په خوبونو شوې
ښنګه ښۀ حاصل دِ دَ ژوند شته کۀ نه
اې دَ مينې أُوره دَ کلونو شوې

بيا له مانه دا پوښتنه مۀ کوئې
چرته په آرام ئې دَ يادونو شوې
زۀ د ژوند په دا سې مرحلو کښې يم
ښکته را ګزار دَ سر دَ غرونو شوې

Bailey Hall, University of Minnesota,
MN, USA
January 24, 1990



# خوبونه

لا زخمی زخمی اشنا د زره په سر يم
غم لرلې سودائ خاورې په سر يم

د نيم ګرې شپې خوبونه وو چه تير شو
اوس ئې چاپې ښکلوم په سمه وغريم
هيڅ په بند د دې نسخوګی نۀ پوهيږم
تل دوا وته ليواله در په در يم
کۀ هرڅوئي عقل نۀ اخلی خو زړۀ وائي
يوه ورځ به هغه راشی زۀ خبريم

چه م ژوند شو همه تير په تلوسو کښې
حق حيرانه په دې کرو د مقدر يم

Agricultural University, Peshawar
PAKISTAN
November 11, 1988

# غزل

په کوم قصور دِ سزاوار په دغه حال کرمه
چه دِ بندی د عشق په جال کرمه

یا م درد واخله یا م یار راوله
عشق ئې بې کوره بې مجال کرمه
وخته حسینو له انصاف ورکره لږ
په پسو تورو ئې حلال کرمه
یوه ذره پرې نۀ رسیږمه زۀ
چه دِ کارونو ته خیال کرمه
ته چه ئې ورانې بیا جوروې ئې ولې
ستا نه لږ ستا د کرو سوال کرمه
زه ئې د ښوؤ ویستلې د ژوند
مینې ناکاره بې کمال کرمه

مخ رانه واروی بدله کری لار
هغه چه طمع ئې د وصال کرمه

Comstock Hall, University of Minnesota, MN
USA
July 1, 1992



# د نمر سترگه

رابه شي سحر د خوشحالو وینم
لرې د نمر سترگه په ختو وینم
سم لکه لاله چه نرې باد ئې اوُری
زرۀ م د حسرته په تالو وینم

بیا ئې نن وعده د راتلو کرې ده
تاؤ د عشق بیا په تودیدو وینم
لا م د سرور بخری شته یو څو
اور د مینې بیا په لگیدو وینم

بیا به هاغه ستوری توله شپه شمیرل
خوب د چا حسینې د راتلو وینم
رسم د یارئ دِ تل اباد اوسی
یکی دغه اسره د ولولو وینم

راشی په ادا خواله روانه شی
بیا رنگین خوبونه په رنرو وینم
نن م بیا مالیار مسکې لیدو په خوب
باغ د گلو بیا په غوړیدو وینم

ځار له هر لحظې د مینې وخته ستا
ستا د لاسه ژوند د رنگینو وینم
بیا دَ چا نظر دِ زړهٔ راکښلې دې
بیا دِ چه زرینه په نغمو وینم

2101 Knapp, Saint Paul, MN
USA
November 30, 1992



# سبق

کهٔ خندا د بنگرو شرنگ غوارې تهٔ
سپین مروندونه د چا ځنگ غوارې تهٔ

ورځه ادب د میکدې ازده کره
کهٔ ماښامونه رنگ په رنگ غوارې تهٔ
دا د حیا عزت قصې هیرې کره
مست کهٔ خوبونه په پالنگ غوارې تهٔ
د سر پگړئ د ملاتوب لرې که
پیغلې په ناز که په چور لنگ غوارې تهٔ
واخله پیاله د ساقی جوش راوله
خوند د نغمې سُر کهٔ د ترنگ غوارې تهٔ
دلته خمار نشه خرځیزی په تول
په خالی لاس ځنگ موتې بنگ غوارې تهٔ
زړهٔ د زمری نظر د باز غواری دا
لاس کهٔ د پیغلې لاپې جنگ غوارې تهٔ
مینه خوزه ده خو دیر گران ئې گتل
که نه سبق څه د پتنگ غوارې تهٔ

سر پکښې کیزده نو گیلې کوه بیا
په ځهٔ زرینه وفا ننگ غوارې تهٔ

2101 Knapp, Saint Paul, MN
USA
August 18, 1992

# غزل

دغه رښتیا دی که دهوکه راکوی
نن چه اشنا راله وعده راکوی

دا خو زما د فکره خیاله بهر
دا د څه اجر زمانه راکوی
چه به یې زما په لیدو لار پرېښوله
مسته دلبره هغه خله راکوی
چا ته مې حال د نوی خوب اووایم
ګل د ګلاب راله تحفه راکوی
دا م ماښام دې که سحر د ځوانۍ
تشه خندا یې راله مزه راکوی

لا م لشه د ځوانۍ وتې نه ده
ګوټ د شراب راله جوته راکوی

2101 Knapp, Saint Paul, MN
USA
July 23, 1993



# تیره ځوانی ـ

خوزه به نهٔ وی دا پیکه خو نه ده
دَ اُوری شپه د ژمی شپه خو نه ده

چه به هر ځائ په هر نظر پریوزی
دومره زما مینه کچه خو نه ده
ځوانی به تیره وی خو جوش م شته لا
زور به یم زه لا ولوله خو نه ده
راته بیا تیر یادونه مه یادوئي
ژوند خو احساس څه افسانه خو نه ده
ورکې د زره دِ اندیښنې لرې کره
لا مازیګر ګلې تیاره خو نه ده
ایله م خوند د جنون شوې د خلې
لا خو اول څه خاتمه خو نه ده

حسن که هر څومره نایابه شی خو
ستا دا انکار! دا طریقه خو نه ده

Saint Paul, MN
USA
August 21, 1992

# غزل

چه په خپل تیر ژوندون نظر اوکرمه
د لیونتوب د نادانئ قصه ده

راله م هر خواهش غصه راولی
خاص م د ژوند د بربادئ قصه ده
ستا نه خفه اوس مرور په څۀ شم
دغه زَره اوس پخوانئ قصه ده
ما کره وفا تا پرې پښیمانه کرمه
ستا د جفا بېوفائ قصه ده

لکه په زرۀ کښې م چه مات وی ازغې
څۀ م د عشق د ناکامئ قصه ده

IDE, Shinjuko-KU, Tokyo
JAPAN
November 19, 1997



# نظم

چه میلسونه د ښکلا ئې په کوڅو شی
د خوده په وتو شی ځلمي دی کۀ زاره
لکه چنار هسکه ئې ونه
دا د خارو چه کوی تلنه
دنګه غرئ سینه ئې پلنه
چه ئې اوربل په تندی خور لا دَ نخرو شی
د خوده په وتو شی ځلمی دی کۀ زاره
دا چه شرمیزی د حیا نه
ځان سره شنه شه د خندا نه
لاس په سینه روشي روانه
چه ئې رخسار د تاؤه سُر لا په غرمو شی
د خوده په وتو شه ځلمی دی که زاره
په انګو ئې خوله رودونه
زلفی سنبل ئې اوری بادونه
په سر قمیص ئې سره ګلونه
چه د ګوګله پسې زره م په الوتو شی
د خوده په وتو شی ځلمی دی که زاره

Uptown, Minneapolis, MN
USA
Janurary 16, 1994

# ارې دورې

له هر څه اول شیشه گوری چه پاسی
بې ښیوې ورته مخ شوکې شوکې ښکاری

دا نادان د ژوند د رازه ناخبره
حقیقت لکه د خیال رنگینه غواری
د دنیا خوند ئې تر خلې نهٔ شو ساعت یو
خوار د مرگ د یرې شپه او ورځ ژاری
د دنیا د کاره وتې په سوز مست
دې به چرگه د اشنا د کور هم ساری
دې د صبر نمونه به غر د فکر
**کهٔ شاگرد ئې هم د شا ولی په کانړی**
د کائنات په معنی پوهه دې ماهر ته
په رنړا ورځ تیرې او ستوری ښکاری

تهٔ د فکر دشت چه څومره هم دراز کړې
دغه هر څهٔ دې په تله تلل غواری

2101 Knapp, Saint Paul, MN
USA
August 23, 1992



# د عون اشعر حسین په نوم

گوره څما نوم چه حبطه نه کړې
خوا د خپل پردی په ما سره نه کړې

ما د دَ لورتیا نخښې لیدې په خوب
باغ د حسرتونو م سپیره نه کړې
دا د ادم کوُل تول خوئیندې رونره ستا
زره دچا ازار په څه لمحه نه کړې

ژوند او غم یئ یو سره ترلی دی
وار چرته خطا یا حوصله نهٔ کړې
واخله ښه خویئ د کارندوو ښو
فام د چا تیارې ته اسره نه کړې

خپل ضمیر اِستاذ د ستر پوهانو پلار
ته به پیروی د بل بنده نه کړې
دا م ستا په نوم نن تا له اُولیکو
ته د خپل بابا چه بیا گیله نه کړې

Comstock Hall, University of Minnesota, MN
USA
June 22, 1992

# سليم شاه ته خط

تۀ لوپته يادوې دلته کښې خو
ښځې بربندې په کوڅو کښې ګرځی

دلته د دې خبرې باک نشته دې
کۀ څوک لغر څوک په جامو کښې ګرځی
دا ګير چاپير ښکلا به څۀ وينمه
چه خپل وطن م په ککو کښې ګرځی

چا ته ګلزار چاته انګار دا وطن
دا چه بې زار ځنې نخرو کښې ګرځی
کۀ د خيالی اتوار دِ اوليدو نو
تر ځنکدن به دِ مازغو کښې ګرځی

له هره ګوټ دلته راغلی خلق
دا چه حيران ځني نشو کښې ګرځی
دلته خو جاز دې يا موټرې دی او
زمونږ خانان لا په ټانګو کښې ګرځی

خطه سلام په سليم وايه زما
ځه د زرين دِ په مصرعو کښې ګرځی

Bailey Hall, University of Minnesota, MN, USA
February, 1989



# نصيحت

لز د درد سره عادت شه
بس دا وير انګولا پريږده
ژوند په وير او سلګو نشی
قدم واخله امسا پريږده

اوس خبر شوې ته د لارو
دُ مشرق هم د مغرب
ته حاجی او مُلا څۀ کرې
مسئلې دا سودا پريږده

رواجونه دا رسمونه
پيداوار دی د حالاتو
ته خبر په دغه راز ښۀ
چل ولی دا ريا پريږده

د صبا په لوری تگ
یو د نمر په لیدو نشی
څه همت اوکره بیدار شه
نور خوبونه خندا پریږده

ته د وخت چه مخکښې نهٔ شوې
نور په شا مهٔ پاتې کیږه
تیر وخت بیرته نهٔ راځی بیا
بې غمي دا خطا پریږده

2101 Knapp, Saint Paul, MN
USA
April 19, 1992



## په موجودیت

د پرون او د صبا غم، گله پریږدوه هغوته
په تش نومِ چه ژوندی دی، نا خبره دغه مروته

چرته یو سی سُر د ساز دِ، چرته ورک شې د خپل ځانه
چه د تنه دِ جدا شی، هوش دِ نه راځی نزدو ته
خوند د ژوند ئې درنه واغست، څه وهمونه دا سودا دِ
واک د ژوند دِ خپله واخله، لار دِ مه پریږده روندو ته
نهٔ په خپله یو جهان ئې، ماوری دزمکې اسمان
وار خطا نشې د وخت، ازمیښتونو کشالو ته
معنی خیز هره لحظه کره، د ژوندون د زرهٔ په وینو
فکر اوکره په چمن کښې، د کلئ د زرهٔ چاودو ته
خوشحالی د ژوندون نهٔ شي، نصیبه د فکرجنو
ارمانی دک زرونه یوسي، ځان سره تورو تیروته

نهٔ زرین او انور څهٔ کرې، څه تا بیا د خپل سفر کره
دلته ځان له تش راځی هر، بیرته بیا ځان له تیروته

Uptown, Minneapolis, MN
USA
January 10, 1994

# رندئي

ولې داسې ته وختونو عجیبه کړي
خاوندانو ته ئې د فکر چه اره کړي
وایه څهٔ قصې ساتلی تا په زړهٔ دی
هره شپه د بلې شپې چه حبطه کړي

آرمانونه دِ پوره شو کوم تالا شو
کوم ازغې دِ ژره وی یهٔ کوم خفه کړي
زمانه وائي قصور دې ستا په خپله
څهٔ اقرار ته څهٔ انکار کومه ګیله کړي

د مُلا فتوې به ستا ګناه ثواب کړي
نن د خپلو حرکتونو که توبه کړي
څهٔ روا څهٔ ناروا دی ستا کتاب کښې
د قاضی په قلم کومه شک شبه کړي

وې ئې اره ده وخت په خپله ماشوره ده
څهٔ زما د زړهٔ پوښتنې معرکه کړي
وخت قاضیان کړو څوک زما شان دمه رنده
تهٔ د کوم قاضی راځې ماته قصه کړي

Knapp 2101, Saint Paul, MN
USA
September 9, 1992



# غزل

دا چه عیب د نورو خلقو را کنی دې
په خپل خیال کښې ځان په خلقو درنوی دې

څوک د بل په سپکه ولو نهٔ درنیږی
دا لعئ چه ځان له زړهٔ خوشحالوی دې
څهٔ حاجت د پښی شا سپکو لوتو ته
دومره ښکته د معیاره ولې ځی دې
چه دِ یوه ذره ښهٔ اوریدې نهٔ شی
په کوم نوم دِ ځان اشنا بیا یادوی دې

دا چه سپکه وائې د بل درنه د ځان
په نظر کښې ځان دَ ښوؤ غورزوی دې

Bailey Hall, University of Minnesota, MN
USA
July 23, 1993

# لوئې بنده

پاک روښانه ئې ضمیر چه
ویښ احساس ئې ورپسې وی
دغه ځان ئې په خپل تن کښې
بې پایان ژور کوئې وی

یو د حق وینا کوي دې
عن که سرئې په خطرې وی
له هر چا نه په اخلاص کښې
دې چه مخکښ گرندې وی

چه د غیرو په ښادئي کښې
رونر خوشحاله ئې تندې وی
د غمونو بې پروا چه
په دردونو کښې مسکې وی

زرین وائې بنیادم دا
لوئې بنده د زمانې وی

Saint Paul, MN
USA
January 10, 1994



# رسم ورواج

اُدرولی ما او تا ژمونږ نیکونو
پیدا گیر دغه دَ وخت دَ ازمیښتونو
اوس بیرئ راته په پښو کښې‌د ازل
مونږ قید یان د خپل تاریخ روایتونو

شولې کوندې څومره میندې په کورونو
څومره خوئیندې سر سر تورې په ویرونو
څو دردیزی به انسان انسانیت
نور د لاسه د رواج د دې رسمونو

څومره پیغلې او ځوانان شو د قبرونو
په ارمان د یو نظر د دیدنونو
درد د زرۀ م راشی اوښکې شې ککو کښې
مئینان چه په سر وینم د دارونو

دا غماز د لار دَ عشق د سوۀ زرونو
دا نظام دزمانو زور د وختونو
پاسیئ پورته شیئ ملگرو دا پوره وه
چه آزاد کرو ځان د دغه زنځیرونو

Uptown, Minneapolis, MN
USA
August 10, 1995

# په انسانیت

زما ورور دې هغه یهود دې کهٔ کافر دې
تل په غم ئې زهٔ شریک زما ځیگر دې
زهٔ منونکې دَ اصولو، ورور ولئې انسانیت یم
ماته یو شان هغه خان دې کهٔ اِینگر دې

ته ئې څه گورې په گرنت او په گیتا کښې
انسان څهٔ خو بس یو قسمه ځناور دې
د مُلا قصې کهٔ اورې څه جماعت ته
زما او ستا لارې جدا بیل تصور دې

چه پیدا دَ یو آدمه شو بیا څنگه
خان کاکا په څهٔ اوچت د کسب گر دې
اودرولی ما آوتا زمونز نیکونو
خپل مطلب له مناره کهٔ دا ممبر دې

خوشحالی خندا ژرا ده په خپل لاس کښې
گنزه دا چه بس هم دا یو کار هنر دې
هنر دا چه گُله حق د نورو مهٔ خوره
دا خو دغه یو کمې چه ژوند ثقر دې



دغه ژوند دِ زیات نه زیات به وی سل کاله
څهٔ حاصل ئې کهٔ دِ دیر مالّ و دوتر دې
هیڅ خلاصې دِ دَ مرگی خونړی نشته
عقوبت به شې فنا نو پس کهٔ ذر دې

هیڅ څوک نهٔ غواړی چه پریوزی له سترگو
هغه ته ئې اوکه زید بکر عمر دې
زهٔ زرین ئې د زړهٔ وایم کهٔ ئې اورې
نهٔ خبرې چه غرئ هغه شاعر دې

Baltimore, Maryland
USA
August 19, 1992

# متلي

ستغه خو ښکاره چه وی
غته یا وړه چه وی

لري د هغې لرې ځه
ژبه ئې اوزده چه وی
چرې د ځان مهٔ وایه
لویه او درنه چه وی
باندې اوره لاس لاندې مه
جگه دِ شمله چه وی
وایه په زړهٔ مهٔ پریزده
هله خو موقع چه وی

ښه د نهو یوه ښه
لاس کښې درسره چه وی

Sain Paul, MN
USA
August 3, 1993



# غزل

څه شوې هغه لورې ارادې ځما
پورته شه بیداره شه جذبې ځما
یو رمه چپو درنه دوبیزمه
چرته ئې همته حوصلې ځما

چرته هم مالیار ووه په خپله زهٔ
برخه بیابان اوس ویرانې ځما
چاوې چه به گلو ته زیریزمه
ځار دِ د رنگونو افسانې ځما

تیره قافله رانه د وخت شوله
دا ځان له ژړا دا شوگیرې ځما
ژوند ځنې کنار ووم داسې کله زهٔ
څه شوې د خندا ډکې نغمې ځما

بخته ځما راشه ورکه چرته ئې
راشه په پوښتنه که راځې ځما
چاوې چه به زهٔ داسې زوریزمه
پورته د گوگله دا لمبې ځما

2101 Knapp, Saint Paul, MN
USA
May 22, 1993

# میلمانۀ

حاسدان شو راته نن م هغه ښکلی
ما په وینو چه ساتلی وو نازولی

ورګوی چه درد د مینې په جواب ګښې
ما لیدلی بې مَرُوته بلا ښکلی
تل حاصل ئې پښیمانی راته تول یاد
ما د عشق په کارونو خپل ژرلی
وایم څومره بختور دی هغه خلق
چه یاران د صدق اخلاص ئې رسیدلی
د یو خوږ نظر په خوند چه دهوکه نشئ
ګام په ګام کندونه ښکلو وی کنلی
چا ته نار نو چا ته نور شی دغه مینه
څوک خوشحال څوک په ژرا ئې ژرولی

پټ په زړۀ کښې خوشحالیږمه هر بیت ته
میلمانۀ لکه د لرې وی راغلی

2101 Knapp, Saint Paul, MN
USA
March 24, 1993



# غزل ـ

مینه څه خو ځان په اورستی کول دی
د خپل لاسه ځان په خپله ورکول دی

ما دردونو ته خپل پریږدئ چه دردیږم
له ما لرې شې پردی اوکه م خپل دی
د آدم بچی وفا چا سره نه که
دغه طمع د بې سود زره غلول دی
دا چه وای "په ما ګران له تانۀ ځار"
دا لوظونه تش خبرې چل و ول دی
د رنړا ورځې خوبونه څه تعبیر یئ
د کنکرو کور هوا کښې جوړول دی

ته لا ځوان وینه دِ ګرمه نه پوهیږې
د زرین خبرې کرښې د ازل دی

Baltimore, Maryland
USA
August 9, 1992

# غزل

چه زخمی شی د نظرونو په گذار کښې
څنگه زړۀ ئې شی بیا پاتې په اختیار کښې

د خیالی دینا بهر راشه نو هله
شماره وه دِ ځان شمارې که د څۀ شمار کښې
زۀ د عشق په معنیٰ دومره څه پوهیږم
خوند د مینې ئې تول ایښې انتظارکښې
تۀ د ژونده خپل مزه سرور که اخلې
ځه ورځه په سیل د گلو په گلزار کښې
ننگ اخلاص اعتبار احساس سوزد ځیگر
دغه واره لټووم زۀ په هر یار کښې

ځه زرینه څه نور نوی تازه راوړه
څه زړې خبرې اړې په اشعار کښې

Saint Paul, MN
USA
August 19, 1992